# سرلیکونه

# كركټ د فكري جګړې وسيله او وسله

الحمد لله رب العالمين والصلاة والسلام على رسوله الأمين وعلى أزواجه و أصحابه ومن تبعهم بإحسان إلى يوم الدين أما بعد :

كفارو د فكري جګړې په لړ كې د اسلامي امت د ځوان نسل فكرونه داسې تسخير كړل، چې اوس ورته خپل ارزښتونه پردي او پردي كفري ارزښتونه ورته خپل ښكاري ، كفارو او په ځانګړې ډول غرب په دې وروستيو كې د فكري جګړې د مختلفو وسايلو په مټ زموږ ځوان نسل داسې وروزه چې بيرته لارې ته راوړل يې خورا زيات كار غواړي ، ددې فكري جګړې ښكار يوازې ځوان كهول نه دى ، بلكې دا فكري جګړه اوس هم په دومره هنر روانه ده چې ډيرى د پاخه عمر او ان د اسلامي علومو ډاكټران او متخصصين هم پرته له دې چې دا درک كړي چې دوى هم ددې جګړې ښكار دي لګيا دي ، هغه معيارونه ، شعارونه او ارزښتونه پالي چې هغه اسلامي نه ، بلكې كفري دي او فكر كوي چې دوى اسلام ته په خدمت لګيا دي ، يا خو داسې خلک په شعوري توګه ددې جګړې ښكار دي او يا هم خپل دې تنزل او د كفارو چوپړ ته د وخت د ضرورت او حكمت نوم وركوي ، د كفارو له لورې د فكري جګړې د وسايلو څخه خو يې

ځینې دومره بوختونکي په زړه پورې ، عادي او مروج شــوې وي ، چې ډیر پوهه خلک یې هم په طلسم کې راغلي او که ددې هر څه په زیانونو پوهیږي خو د ټولنې د عکس العمل او غبرګون له ډاره غږ نه پورته کوي.

تاسـې پوهیږئ چې نظامي جګړه دومره موثره او زیانمونکي نه ده لکه څومره زیان او تخریب چې فکري جګړې اړولی او لا یې هم زیان ورځ تربلې زیاتیږي ، اوس هم د اعلام ، تعلیم ، صحت ، هنر او ادب او تفریح په برخو کې د اسـلامي امت د بچو د فکرونو د تسخیر ساتلو لپاره همغسې کار او زیار روان دی.

غواړو چې په دې لنډه رساله کې د کفارو له لورې د فکري تسـخیر په هدف د طرحه شــویو تفریحي پروګرامونو له ډلې یې یوازې د لوبو په برخه کې د کرکټ په معنوي زیانونو لنډه خبره وکړو.

ډیری خلک کرکټ ته فقط د ورزش او د یوې بوختونکې لوبې په نظر ګوري او په دې یا نه پوهیږي او یایي پرې سـترګې پټې کړې وي چې دا ورزش نه ،بلکې د فکري یرغل یوه وســیله او د ګڼو سکولر اساساتو د پاللو او ساتلو سرچینه ده ، دا لوبه ددې او دې ته ورته نورو ګڼو اهدافو د پاللو په هدف د انګریزي اســتعمار له لورې په ۱۷۴۴ کال کې رامنځ ته شـوه ، چې اوس تقریبا د نړۍ په

ډيرى تقريباً ســلو هيوادونو کې ترسره کيږي او د (ICC) په نوم يوه نړيواله شورا ددې لپاره قوانين جوړوي او وخت په وخت ددې لوبې کفارو ته په معنوي لاس ته راوړونو خپل منظم بحثونه لري او ورځ تربلې يې په وده او پرمختګ کې هلې ځلې کوي.

د اسلام مبارک دين د بدني اعداد او ورزش لپاره خپل حدود ټاکلي ، کرکټ ورزش نه بلکې يوه حربه ، توطيه او فکري جګړه ده.

اســلام د ورزش مخالفت نه کوي بلکې خپل بدن ته د ورزش له طريقه قوت او تربيت ورکول د خه صحت جوړيدو لپاره وي او په دې هدف وي چې د خپل بدن قوت به د الله عزوجل د دين د قيام په لاره کې په خدمت مصرفوم.

د هرات مشهور حافظ ابو يعقوب القرّاب خپل کتاب(فضائل الرمي في سبيل الله ص ۵۵)کې نقل کړى :

عن مَكْحُول الدِّمَشْقِيّ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، كَتَبَ إِلَى أَهْلِ الشَّامِ : »أَنْ عَلِّمُوا أَوْلَادَكُمُ السِّبَاحَةَ وَالرَّمْيَ وَالْفُرُوسِيَّةَ.«

ژباړه :عمر بن خطاب رضي الله عنه د شام خلکو ته دا حکم ليکلى و تاســې خپلو اولادونو ته لامبل، نبــه ويشــتل او د اس ســورلۍ ورزده کړئ .

دغه شان صحيح البخاري كې نبي عليه السلام فرمايلي دي :ارموا بني إسماعيل، فإن أباكم كان رامياً .

ژباړه :اې د اسماعيل اولاده، تاسې غشــــي وولئ، ځكه ستاسې پلار هم غشی ويشتونکی و .

او صحيح مسلم کې هم د عقبه بن عامر په روايت سره د نبي عليه السلام دا قول نقل دی :

وأعدوا لهم ما اســتطعتم من قوة، ألا إن القوة الرمي، ألا إن القوة الرمي، ألا إن القوة الرمي.

ژباړه: تاسې تر خپلې وسې ډير زيات طاقت برابر کړئ، خبر شئ قوت غشي ويشتل دی، خــــبر شئ قوت غشي ويشتل دی، خبر شئ قوت غشي ويشتل دی .

او صحيح البخاري او مسلم بل روايت کې نبي عليه السلام د اس سورلۍ ته داسې ترغيب ورکړی :

»الخَيْلُ مَعْقُودٌ فِي نَوَاصِيهَا الخَيْرُ إِلَى يَوْمِ القِيَامَةِ«

ژباړه :د اسونو تنديو کې تر قيامته خير پروت دی.

بل حديث کې ورسره دا الفاظ هم ورزيات شوي: [الأَجْرُ وَالمَغْنَمُ]دغه خير اجر او غنيمت دی .

ياني د غشو ويشتل ، لامبو زده کول او په اس سپرلي کول دا هم

ورزش او بدني تدريب دى خو ددې هدف لپاره دي چې د جهاد په ډګرونو كې د كفارو د خه سركوبولو لپاره په دې برخو كې مهارت ترلاسه شي ، اوس نو د غشو ويشتل د اسلحې د وړوكي قسم څخه راوخله تر غټو او نور ډۇ ، ډۇل مختلفو اسلحو پورې ددې تربيت او زده كړه په دې نيت په كار ده چې د جهاد په لاره كې به يي د اسلام د دښمنانو په خلاف استعمالوم ، د اسونو د سوارلۍ ترڅنګ د هر ډۇل عرادو او وسـايطو په تخنيكي برخه ځان پوهول او د چلولو او زغلولو چل زده كول هم مهم دي ، همدا راز لامبو هم درواخلئ ، دا هم مهارت دى هم تربيت دى او هم ورزش او تفريح ده ، همدا راز خپل بدن په جسماني لحاظ پياوړى كول په كار دي ، بوكســينګ ، فري فايټ ، باډي بلډنګ او نور د بدن د قوت تدريبونه او د چالاكۍ او چســتوالي مهارتونه په همدې بنياد حاصلول ضرور دي چې ستا بدن قوت او سختوالى ومومي او ته په ډيره خه طريقه د اسلام د دښمنانومقابله وكړې ، دا هم ورزش دى په همدې برخو كې د اسـلام د اصـولو په چوكاټ كې خپلمنځې سيالۍ او مسابقې برابرول ، د ځوانانو تشويقول او هڅول تر ټولو مهم دي اسلام ددغه راز لوبو او ورزش هيڅكله مخالف نه دى نو په همدې اساس لوبې په دوه قسمه دي :

اول قسـم : هغه لوبې چې د انســان قوتونو کې اضــافه راولي او مجاهد سره په جهاد کې هم کومک کوي، برابره خبره ده که هغه د لاس قوت ته وده ورکوي او که د پښو او بدن نورو غړو ته قوت ورکوي ، لکه لامبل (سباحة)، نښه ویشتل، یا د اس سورلي، وغیره . چې د انسان نیت پکې برابر وي، دا هم جهاد دی .

دلیل پرې مشـهور حدیث دی چې نبي علیه السـلام د غشـو ویشـتو باندې ترغیب ورکړی .

" ارْمُوا بَنِي إِسْمَاعِيلَ فَإِنَّ أَبَاكُمْ كَانَ رَامِيًا " صحیح البخاري

او دا نورې لوبې هم پدې قیاس دي .

دویم قسم : هغه لوبې چې جهاد کې انسان سره کومک نه کوي نو دا هم په دوه قسمه دي :

(اول) هغه لوبې چې شریعت کې ترې منعه راغلی وي نو دا خو بالاتفاق حرام دي .

(دویم) هغه چې شریعت کې نه پرې امر وي او نه ترې منعه راغلی وي، نو دا هم په دوه ډوله دي :

( اول)هغه لوبې چې په حرامو مشــتملې وي لکه تصــویران، یا موســیقي پکې وي، زنانه و سره اختلاط په کې وي، د کفارو سره مشــابهت او د هغوی سره په محبت بنا وي، یا هغه لوبې چې د

اختلاف باعث ګرځي نو دا هم منع او حرام دي، ځكه ذريعه د حرامو حرام وي .

(دويم) هغه لوبې چې څه حرام كارونو باندې مشتمل نه وي لكه واليبال، فټ بال وغيره نو دا په لاندې شرطونو جائز دي :

(۱)اول شرط .جواري به پكې نه وي .

(۲)دويم شرط . د الله د ذكر او اطاعت نه به انسان نه غافله كوي .

(۳)دريم شرط . بيخي زيات وخت به نه وركوي چې همدې ته كار ووايي

(۴)څلورم شرط. مسلمانانو ته به پكي هيڅ ډول ضرر نه وي .

(۵)پنځم شرط . د سيكولريزم د ترويج وسيله به نه وي.

اوس نو همدې او ځينې نورو شرايطو ته په كتلو تاسې لوبې كتې ګوري كړئ چې كركټ په كومو لوبو او كوم ډول ورزش كي راځي ، كه د دې لوبې نه، بلكې حربې په زيانونو تفصلي بحث وكړو نو دا به ددې ورې رسالې له برداشته بهر وي خو هڅه به وكړو چې د كركټ په معنوي زيانونو او ددې لوبې څخه د كفارو په هدفونو لنډ شان بحث وكړو.

## (١) كركټ د اسلامي امت د ځوان كهول فكرونه او ذهنونه مكمل مصروف ساتلي:

تاسې ګورئ چې د هر مجلس او د هر سفر او حضر موضوع همدا كركټ ګرځيدلې ده ، د اسلامي امت ځوانان په نور څه فكر كولو ته وخت نه لري ، او نه پريښودل كيږي چې اسلامي امت ته په ورپيښو ستونزو سوچ او فكر وكړي ، په حل لارو يې كار وكړي ، په دې برخه كې د ځوانانو مسوليتونه وپيژني او نور ډير څه .... نه بلكې د دوی ټوله سرګرمي مصروفيت ، مسوليت او مكلفيت همدا كركټ ګرځيدلی او بس.

### د ځوانانو اسلامي رسالت او مكلفيت

ځوانان په دې مكلف دي چې د الله د دين خدمت وكړي ځكه همدا ځوان نسل دی چې هر وخت يې د دين خدمت ته غاړه وركړې لكه د أصحاب كهف په اړه هم داسې راغلي چې هغوی ځوانان وو الله تعالى فرمايي: إِنَّهُمْ فِتْيَةٌ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَاهُمْ هُدًى [سورة الكهف:13]،ژباړه:هغوی څو تنه زلميان ول چې پر خپل رب يې ايمان راوړی ؤ او موږ هغو ته په هدايت كې پرمختګ ورپه برخه كړی و.

او ابراهیم علیه السلام چې بت شکن و، توصیف یې په ځوانۍ سره شوی.

ځواني داسې یو نعمت دی چې په اړه به یې د قیامت په ورځ ځانګړې پوښتنه کیږي لکه حدیث کې راځي: عنعبد الله بن مسعود رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: : «لا تزول قدما عبد يوم القيامة حتى يسأل عن عمره فيم أفناه؟ وعن شبابه فيم أبلاه؟ وعن ماله من أين اكتسبه؟ وفيم أنفقه؟ وعن علمه ماذا عمل فيه؟»رواه البزار والطبراني بإسناد صحيح

ژباړه: د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه نقل دي چې هغه یې د نبي علیه السلام څخه نقل کوي چې هغه فرمایې: د یو بنده قدمونه به د قیامت په ورځ تر هغه د خپل ځای څخه ونه خوزیږي ترڅو چې ترې د عمر په باره کې تپوس نه وي شوی چې په څه کې یې تیر کړی؟ او ځواني یې په څه کې زړه کړی؟ او مال یې د کوم ځای نه ګټلی او په څه کې یې خرچ کړی؟ او په خپل علم یې څومره عمل کړی دی؟.

نو د نور عمر ترڅنګ به د ځوانۍ په اړه خاص پوښتنه کیږي، دا له دې وجې چې ځواني د عمر داسې یوه ځانګړې مرحله ده چې په دې کې د انسان ټول قوتونه راجمع وي او دهر قسم عمل کولو توان

لري نو ځکه خو يې مســـوليت ډير دی، او لوی بـار يې پـه اوګو پروت دی او هغه دا چې د نبي عليه الســـلام رســـالت او پيغامونه خلكو ته رســـول، امت د غفلت د خوب نه راپيداروول او د دين د غلبې او کاميابۍ لپاره د الله په لاره کې هجرت او جهاد کول، له دې وجې که د اسـلامي امت مخکنو ځوانانو ته فکر وشي نو هغوی د عمل په ميدان کې ډيرې کارنامې ترسره کړې دي چې دې باره کې دعلي بن أبي طالب، أســـامة بن زيد، خالد بن الوليد، عبد الله بن عمر او د عبد الله بن عباس رضـوان الله عليهم أجمعين سـيرت کتلی شـئ، نو د اوسنو ځوانانو هم دا مسوليت جوړيږي چې د الله د دين د قيام لپاره کوټلي ګامونه واخلي او د دغو صـــحابه و تګلاره خپله کړي ، نه دا چې شپه او ورځ د کرکټ په لوبو بوخت وي ، کفارو پسې يې د راکټ په ځاې ويکټ راخســتي وي او د جهاد د ګرم ډګر په ځاې د کرکټ د نرم او شــنه چمن په غيږ کې د بيټ او ويکټ په ســياليو کې کفارو سره د صميميت په فضا کې لوبې کوي.

## (۲) له دې لارې د فحشا او اخلاقي فساد ترويج :

تاســې ګورئ چې د کرکټ په لوبغالو کې ځوانان او پيغلې د لوبو پرمهال په کوم حالات کې وي ، دوی په څه ډؤل د خپلې حيا او

ارزښتونو جنازې وباسي ، د نیمه بربنډو انجونو په منځ کې لنډه غر او لوفر ځوانان د کوم هدف لپاره د یو بل سره اختلاط او اړیکي پالي ، د کرکټ د لوبغاړو او د نامحرمه انجونو ترمنځ د روابطو او یو بل سره د مینې او محبت د اظهار بیلګې خو له شماره وتلي ، دا هر څه بیا په تلویزونونو نشودل کیږي او بیا ورته په شریکه د یوې کورنۍ زنانه ماشومان لوی او واړه ناست وي ، د ډیرې مستورې کورنۍ زنانه به هم د لوبغاړو لوڅې پنډۍ ویني خو کومه د شرم او عار خبره به ورته نه ښکاري او نارینه به یې په لوبغالي کې د نامحرمه انجونو لوڅې متې ویني خو کومه د ګنا خبره به ورته نه ښکاري او راتلونکې نسل یې هم د همدې فحشا څخه په رنګ اخستو د اخلاقي مفاسدو ښکار شي په

دې اړه ګڼ قراني او نبوي ارشادات او وعیدات موجود دي چې دلته یې په لنډ ډول یادونه کوو

الله عزوجل د بې حیایې د ترویج سخته بدي بیان کړې او ډیره لویه سزا یې پرې مرتب کړې ده لکه فرمایي: إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَن تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۚ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ [سورة النور: 19]

ژباړه:په يقيني توګه، كوم كسان چې د مؤمنانو په ډله كښې د بد لمنۍ خپرول خوښ ګڼې، هغوی په دُنيا او اخرت كښې د دردناک عذاب وړ دي، الله پوهيږي او تاسي نه پوهيږئ، نو په دې ايت كې دغه سخت وعيد يا اخطار يواځې هغه چاته وركړې شوی دی چې څوک په مومنانو كې د بې حيايي خپرول خوښوي، د هغه چا به څه حال وي چې څوک د دې ترويج كوي او نورخلک ورته رابلي؟ ـ سبحان الله ـ او همدا راز حديث كې راغلي دي نبي عليه السلام فرمايي: لَيَكُونَنَّ مِنْ أُمَّتِي أَقْوَامٌ يَسْتَحِلُّونَ الْحِرَ ، وَالْحَرِيرَ ، وَالْخَمْرَ وَالْمَعَازِفَ [رواه البخاري رقم الحديث: 5187]

ژباړه: خامخا زما له امت نه به څه خلک وي چې زنا، ريښم، شراب او سندرې به حلال ګڼي. نو دغه خلک د دې حديث مصداق دي او همدا معنا يې په عمل كې ثابته كړې ده،

## (۳) كركټ د وخت او پيسو ضايع ده:

تاسې ګورئ چې دغه حربه په څومره مهارت د خلكو وختونه او مالونه لوټوي ، په مختلفو شكلونو په ميلونونو كسان خپل كارونه پريږدي او په ورځو ، ورځو د همدې حربې په طلسم كې راګير وي

، په مختلفو شــكلونو خپلي پيســې مصرـفوي او په دغه لوبو كې يا برخه اخلي او يا يې د ليدو په پار د خپلو مالونو تباهي هم كوي ، د وخت په ارزښــت او همدا راز په بيځايه او بيهوده شــيانو خپل وختونه او مالونه ضايع كولو په

اړه هم ګڼ قراني او نبوي وعيدات او ارشـــادات موجود دي چې ځينې يې دا دي:

الله عزوجل په ډيرو ايتونو كې په زمانه قســـم كړى دى چې دا د وخت او د زمان په اهميت دلالت كوي لكه فرمايي( وَالْعَصرِـْـ*إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ،) [سورة العصر: 1،2]

ژباړه: قسم په زمانه يا په وخت د مازديګر چې يقينا انسان په تاوان كې دى. او بـل ځـاى كې فرمـايي: وَالْفَجْرِ وليـالٍ عشرـ [ســورة الفجر:2،1]

ژباړه: قسم په سهار دى او په لسو شپو(د ذوالحجه).

او په حديث كې راځي: عن عبد الله بن عباس رضي الله عنهما عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: «نِعْمَتَانِ مَغْبُونٌ فيهما كثيرٌ من الناس: الصحةُ، والفراغُ». [رواه البخاري]
.

ژباړه: د عبد الله بن عباس رضي الله عنهما څخه نقل دي، هغه يې د نبي صــلى الله عليه وســلم څخه نقل كوي چې هغه فرمايي: دوه

نعمتونه دي چې ډير خلک په کې نقصـــان کې اخته دي: روغ صـــحت او فارغ وخت دی. او په بل حديث کې راځي نبي عليه السـلام فرمايلي دي: اغتنِمْ خمسـًا قبل خمسٍ : شـبابَك قبل هَرَمِك، وصِحَّتَك قبل سَقَمِك، وغناك قبل فقرِك، وفراغَك قبل شُغلِك، وحياتَك قبل موتِك. [الترغيب والترهيب | الصـفحة أو الرقم : 4/203وسـنده صحيح]

ژباړه: پنځه شيان مخکې له پنځو شيانو غنيمت وګڼه: ځواني مخکې له زړښـت څخه، روغ صـحت مخکې له مريضـتيا څخه، مالداري مخکې له غريبۍ څخه، وزګارتيا مخکې له ناوزګارۍ څخه او ژوند مخکې له مرګ څخه غنيمت وګڼه. نو دغه خلک چې د کرکټ په لوبو يا تماشـــو کې اخته دي، دوی په دې الهي فرمان او نبوي احاديثو کوم ځای کې عمل کړی دی، څومره وختونه يې ضايع کړي دي او څومره غفلتونه ورڅخه شـوي دي، دوی به د دغه وختونو په اړه الله ته څه ځواب ورکوي، دا وخت او زمانه خو د الله يو امانت دی چې انسان ته يې د نيک عمل لپاره ورکړی، دوی د الله دغه امانت ضايع کړی دی.

## (۴) د طاعت او عبادت څخه غفلت:

ددغه حربې په طلســم کې راګیرو ځوانانو باندې دا لوبه داســې جادو کوي چې ددې لوبې په ننداره مصــروفو خلکو ته نه د لمانځه وختونه یاد وي نـه یې تلاوت او نور عبـادت تـه فکر وي فقط :چغې، شپیلي، چکې او یو شور او هل هله یې مشغله وي.

تـاســې ګورئ څوک چې پـه لوبغـالي کې ددې لوبې پـه ننـداره مصرـوف وي نه ورسره د لمانځه او اوداسه غم وي او نه هم د نورو عباداتو په پابندی ځان مکلف ګڼي ، ځېنې وخت که په لوبه کې د نورو لاملونو له مخې کوم ځنډ راشي نو بیا یې ډیر کم لوبغاړي او یا مینه وال زر زر بې اودســه د چرګانو په څېر تونګې ووهي ټولـه توجو یې لوبـه کې وي فقط د لمـانځـه یو تمثیـل وکړي نور خلاص..

او که یې څوک په تلویزونونو کې په ننداره بوخت وي د هغوی هم همدا حال وي

د یوې داسې مبتذلې لوبې لپاره په ډله ایز شکل د لمانځه د پرېښودو وعیدات څه دي دلته یې لنډ ولولئ:

د جابر رضي الله عنه څخه روایت نقل دی چې نبي علیه الســـلام فرمایي: بَيْنَ الرَّجُلِ وَبَيْنَ الشِّرْكِ وَالْكُفْرِ تَرْكُ الصَّلَاةِ، ]رواه مسلم[،

ژباړه:د سړي او د شرک او کفر ترمنځ فرق د لمونځ پرېښودل دي.
او په بل حدیث کې راځي: د بریده رضي الله عنه څخه روایت نقل دی چې نبي علیه السلام فرمايي:العَهدُالَّذي بيننَا وبينَهُمُ الصَّلاةُ ، فمَن ترَكَها فقد كفرَ.[رواه الترمذي الصفحة أو الرقم : 2621 ،وسنده صحيح]
ژباړه: زمونږ او د دوی(منافقانو) تر منځ(د امن)وعده لمونځ دی، چا چې پرېښود نو کافر شو. او داسې نور ډیر احادیث په دې باب کې راغلي دي چې ټول په دې دلالت کوي چې د لمونځ پرېښودل غټه ګناه ده او په قصداً پرېښودلو سره یې انسان کافر کیږي، نو د دوی په حال کې چې فکر وشي د حدیث دغه اخطار ورته شامل دی ځکه دوی هم په ارادي توګه لمونځ پرېږدي نو دا څومره غټ تاوان دی چې دوی ورسره د دغه لوبې له امله مخ شوي دي، د علماو په دې اجماع ده چې څوک د لمونځ د وجوب څخه انکار وکړي هغه کافر دی او څوک چې یې د سستۍ له امله ډیری وخت نه کوي او یا یې بیخي نه کوي نو د علماؤ د راجح قول له مخې دغه انسان هم کافر دی چې دا قول د ډیرو صحابه و څخه نقل دی.

## (٥) د کفارو او مسلمانانو تر منځ فرق او د برترۍ حس له منځه وړل ،کفارو سره دوستي او موالات کول او د دوی ترمنځ محبت او صمیمت رامنځ ته کول ددې حربې له عمده اهدافو څخه دي

ډیری ځوانان ددې لوبې په نشه دومره مست او سرشاره شي ، چې د خپلې خوښې یو کافر او مرتد لوبغاړی ورته اولګو او د محبت یو سمبول شي ، کفارو سره غاړې ورکول ، ورسره خنداوې او مجلسونه کول ، د هغوی په بریا او ګټه خوشالي کول ، د کفارو د تشویق او هڅونې په هدف ډوّل ، ډوّل حرکتونه کول ، یو بل ته میلمستیاوې کول ، د یو بل نه ځاریدل او قربانیدل ، دا فرق له منځه تلل چې دا حربي کفار دي او د اسلامي امت د نابودۍ او بربادۍ عاملین دي ، خو مسلمانان ځوانان به له کفارو او مرتدینو سره د ورونو او خورو دوستانو په څېر چلند کوي.

کفارو ، مشرکینو او مرتدینو سره ددغه راز محبت او موالاتو په اړه ګڼ قراني او نبوي وعیدات موجود دي حربی کفارو سره دومره په مینه او محبت برخورد کول څه حکم لري ایا د اسلامي امت ځوانان به هغوی ته غاړې ورکوي که غاړې به یې پرې کوي په دې اړه قران او حدیث څه وایي

الله عز وجل فرمايي[ لَّا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِ الْمُؤْمِنِينَ ۖ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللَّهِ فِى شَىْءٍ[سُورَةُ آلِ عِمرَان:28]،

ژباړه: مؤمنان دې هيڅكله داسي نه كوي چې مؤمنان پرېږدي او له كافرانو سره ملګرتيا او دوستي وكړي. څوک چې داسي چلن وكړي، د هغه له الله سره هيڅ اړيكه نشته.

امام طبري رحمه الله د ذكر شوي ايت په تفسير كې وايي: فليس من الله في شيء ، يعني بذلك: فقد برئ من الله وبرئ الله منه، بارتداده عن دينه ودخوله في الكفر،

ژباړه: "د الله سره يې هيڅ اړيكه نشته" يعني دغه انسان د الله نه بيزاره شو او الله د ده نه بيزاره دی، له دې امله چې دغه انسان د الله له دين څخه مرتد شوی او په كفر كې داخل شوی دی.

او په بل ځای كې الله عز وجل فرمايي: وَلَوْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بالله والنَّبِيِّ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَاء وَلَـكِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ [المائدة:81]

ژباړه: كه په رښتيا سره دا خلک د الله، پيغمبر او هغه څه منوونكي وای چې پر پيغمبر نازل شوي ول؛ نو هيڅكله به يې د مؤمنانو په مقابله كښې كافران خپل دوستان نه نيول؛ مګر له هغوی څخه

زياتره خلک د الله له اطاعت څخه وتلي دي.

شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله د ذكر شوي ايت په تفسير كې وايي: فذكر جُملَةً شَرطيَّةً تقتضي أنَّه إذا وُجِد الشّرطُ، وُجِدَ المشروطُ بحرف «لو» التي تقتضي مع الشَّرطِ انتفاءَ المشروط؛ فقال: وَلَوْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ والنَّبِيِّ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَاء؛ فدلَّ على أنَّ الإيمانَ المذكورَ ينفي اتخاذَهم أولياءَ ويضادُّه، ولا يجتمعُ الإيمانُ واتخاذُهم أولياءَ في القَلْبِ، ودَلَّ ذلك على أنَّ من اتخذهم أولياءَ ما فعل الإيمانَ الواجِبَ؛ من الإيمانِ باللهِ والنَّبيِّ وما أُنزِلَ إليه. [يُنظر: مجموع الفتاوى،7/17]

ژباړه: دلته يې جمله شرطيه راوړه چې ددې تقاضا كوي چې كله شرط موجود شي نو مشروط (شرط كړى شوى) به هم موجود شي؛ په"لو" حرف شرط سره، كوم چې ددې تقاضا كوي چې وجود د شرط سره به مشروط نفي كيږي نو وى فرمايل: كه په رښتيا سره دا خلک د الله، پيغمبر او هغه څه منوونكي واى چې پر پيغمبر نازل شوي ول؛ نو هيڅكله به يې د مؤمنانو په مقابله كښې كافران خپل دوستان نه نيول، نو دا په دې دلالت كوي چې دا كوم ايمان په ايت كې ذكر شو، دا د كفارو له دوستانې سره منافي او مخالف دى، او هيڅكله ايمان او د كفارو سره دوستانه اړيكي په زړه كې نه يو

ځاى كيږي، او دا په دې هم دلالت كوي چې څوک كفار خپل دوستان ونيسيـ نو واجب ايمان ته يې راتک ونه كړو؛ چې په الله، پيغمبر او په هغه څه ايمان لرل دي چې پر پيغمبر نازل شوي دي.

نو د قران د ذكر شوو وعيداتو نه ويره پكار ده، ځكه چې د كفارو سره د هغوى د دين له وجې محبت كولو سره انسان كافر كيږي او د هغوى له ډلې شخه ګرځي، حديث كې راځي نبي عليه السلام فرمايي( المرءُ على دينِ خليلِه فلينظرْ أحدُكم مَن يُخالِلُ.[أخرجه أبو داود وغيره رقم الحديث 4833وسنده صحيح)، ژباړه:سړى د خپل دوست په دين دى نو په تاسو كې دې هر يو اوګوري جې له چا سره دوستانه وكړي.مونږ ته د حربي كفارو سره په سختۍ امر شوى دى، نه دا چې د هغوى سره د غفلت په مجلسونو كې برخه واخلو او دوستانه ورسره قايم كړو، ځوانانو ته پكار دي چې د حربي كفارو په اړه د نبي عليه السلام په دې وينا عمل وكړي چې د مكې مشركانو ته يې ويلي و(لقد جئتُكم بالذَّبحِ) . [رواه أحمد في " المسند 11/609"وسنده حسن]

ژباړه: ما تاسو ته حلاله راوړې ده. نو د دوى حلاله ول په مسلمانانو فرض دي، نه دا چې هغوى ته ورغاړي وځي او د ميني او دوستاني اظهار ورته وكړي

## (٦) مفسدينو ته د جعلي اتلانو په شكل تبارز وركول

د اســلامي امت ځوان نســل اوس نه خپل موجوده رښـتيني اتلان پيژني او نه د خپل اســــلامي تاريخ تېر اتلان پيژني ، دوی ته د اتلوليو معيار او ډګر هم بدل ورمعرفي شوی.

كفارو سره د قتال او جهاد ميدانونه اوس د كركټ په لوبغالو بدل شــوي ، پخوا كه به د اســلام بچو په تورو او نيزو د كفارو مقابله كوله او د الله دين به يې پرې حاكماوه اوسـني ځوانان لګيا دي او فكر كوي چې له كوم هيواد څخه دي كركټ وګاټه نو دا يوه ستره فتحه اوســوبه ده ، بيا نو جشــنونه وي ، د خوښــۍ ډزې او نورې ناروا نمانځنې وي.

د دوی په فكر ګټه او بايلات اوس تر كركټه محدود دی بس چې د كركټ لوبه دې وګټله نو ته فاتح هم يې او اتل هم يې.

د اسلامي امت د ځوان نسل فكر دومره تسخير شوی چې په دې اړه كله هم فكرمند شوی نه دي چې اسلامي خاوره اشغال ده ، په ټوله نړۍ د الله د قانون په ځای ديموكراسي ، وطنيت او جمهوريت حاكم دی او د ځوانانو مســوليت دادی چې د محكومې اســلامي خاورې د اذادۍ او په ټوله نړۍ د الله د نظام د قيام په اړه جهاد او نوره هر اړخيزه مبارزه وكړي.

زموږ د تاریخ اتلان خالد بن ولید ، سعد بن ابي وقاص ، ابو عبیده بن جراح ، طارق بن زیاد ... او نور دي .

زموږ اوسني اتلان هغه څوک دي چې په ټوله نړۍ کې د ټولې نړۍ د کفارو ، مشرکینو او مرتدینو په خلاف یې جګړه پیل کړې ، د وطنیت په لومو کې راګیر او د طاغوتي هیوادونو نیابتي جنګیالي او د کفارو د ګټو ساتونکي اسلام بدنامونکي طالب مرتدین نه دي بلکې د اسلامي خلافت مجاهدین زموږ اتلان دي چې د ټولې اسلامي خاورې د ازادۍ او پرې د یو حقیقي شرعي نظام د قیام په هدف د ټولې نړۍ سره لاس او ګریوان دي او په ډېرو سختو حالاتو او شرایطو کې خپل مسیر او کار نه دی پریښې.

نه ، بلکې د اوسني ځوان نسل اتلان د کرکټ د لوبې ګټونکي مفسد لوبغاړي دي.

بس ټول فکر یي د کرکټ په ګټه او بایلات کې رامنحصر شوی.

د کفارو کوشش همدا دی چې په دیني ، سیاسي ، فرهنګي ، فکري او اجتماعي ډګرونو کې فاسد او د غرب په فکر روزل شوی او پالل شوی بوتل ورته د یو ماډل او اتل په حیث معرفي کړي ، دا پریوتي ، پست ، لاو بالي او لنډغر مفسدین به ورته کله د فلمي لوبغاړو په شکل اتلان ورمعرفي کوي کله د سندرغاړو او کله د

کرکټ د لوبغاړو په شکل کفار به همدې خلکو ته کمپاین کوي ، داسې خلک به د خپلو پلانونو په اساس د لوبو په میدانونو کې ګټونکی کوي او بیا به یې په خپله میډیا کې خه ډیر ځلوي او د اسلامي امت ځوانانو ته به یې د یو اتل ، ماډل او الګو په حیث معرفي کوي بیا به نو ځوانان د همدغه لنډه غر د جامې ، څیرې ، فکر ، ناستې ولاړې او د بل هر هغه حرکت چې غرب ورښودلې دا ټول به یې نه یوازې تقلید کوي بلکې همدغه بوتل به دې ځوانانو ته د هر ډګر اتل ښکاري ، چې بیا په مدار ، مدار همدغه جعلي اتلان او کاغذي پړانګان د کفارو له لوري د سیاست په ډګرته راوځي او په سیاسي میدان کې د قایدینو حیثیت غوره کړي ، لومړی غرب دغه راز خلکو ته پراخه تشهیر او حیثیت ورکړي بیا یې د ډیموکراتیکو لارو واک ته کاندید او د یو یرغمل شوي هیواد ولسمشر یې کړي ژوندې مثال یې عمران خان و چې په څه طریقه وځلول شو ، څنګه کاندید شو او څه ډول واک ته ورسید داسې نا اهله خلکو ته د مشرۍ ورکولو په اړه قراني وعیدات .

الله عزوجل فرمایي[ وَلَن يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَٰفِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا [سُورَةُ النِّسَاء :141]

ژباړه: او الله د کافرانو لپاره پر مسلمانانو د برلاس کېدو هیڅ کومه لاره نه ده جوړه کړې.

قاضي عیاض رحمه الله وايي( أَجْمَعَ الْعُلَمَاء عَلَى أَنَّ الْإِمَامَة لَا تَنْعَقِد لِكَافِرٍ، وَعَلَى أَنَّهُ لَوْ طَرَأَ عَلَيْهِ الْكُفْر إِنْعَزَلَ ـ وقال فَإِنْ لَمْ يَقَع ذَلِكَ أي القدرة على خلعه إِلَّا لِطَائِفَةٍ وَجَبَ عَلَيْهِمْ الْقِيَام بِخَلْع الْكَافِر [ا.هـ شرح صحیح مسلم للنووي314/6]

ژباړه: د علماو په دې خبره اجماع ده چې د کافـــــر مشري نه صحیح کیږي او په دې چې که چیري ورته وروسته کفر راشي نو د مشرۍ نه به لرې کیږي ـ او بیا وایې ـ که چیري د هغه په لرې کولو بل چا وس نه لرلو مګر یوې ډلې د هغه د لرې کولو وس لرلو، نو په دغه ډلې لازم دي چې د کافر مشر د لرې کولو لپاره پاڅون وکړي.

نو دا د کافر مشرۍ حکم شو چې دوی په مسلمانانو باندې د مشرۍ حق نه لري خو نن سبادغه د کرکټ نړیوال لوبغاړي چې د اسلام په ډیرو نواقضو درلودلو سره کافر شوي دي؛ خلک ورسره مینه لري او د خپلې مشرۍ لپاره یې انتخابوي، او د خپلو هیوادونو ملي اتلان یې بولي، چې دا ځومره د خطر او ایمان ته زیان رسوونکي خبره ده.

## (٧) د قوميت او وطنيت ګمراه فكر او عقيده پالل، ساتل او ورته وده وركول:

چې دا يي تر ټولو خطرناک زيان او تاوان دی ، د اشـغال شـوې اسلامي خاورې په سينه د كفارو له لورې راښـكل شـوې جغرافيوي كرښــې چې اوس يي په بين المللي ســطحه په مختلفو شــكلونو دوامـداره پـاتې كيـدل د دوی لومړيتوب دی ، يوازې پـه فزيكي شـــكل د هيوادونو د ويش په مانا نه دي بلكې ددې ترشـــا ډير اعتقادي مسـايل او ګڼ معنوي مفاهيم پراته دي ، د وطنيت د كفري عقيدې په مختلفو اړخونو موږ د خراســان غږ مجلې په مختلفو ګڼو او د العزائم خپرندويه ادارې څخه په خپرو شـــويو كتابونو كې رڼا اچولې او اوس پرې تفصـلي بحث ددې رسـالې له برداشـته وځي خو دومره به ووايم چې په اسـلام كې د دوسـتۍ او دښـمنۍ معيار ايمان دی خو په سيكولر اسـاسـاتو كې د دوسـتۍ او دښـمنۍ معيار وطن دی ، د اسـلام له مخې نه بلكې د وطن له مخې ټولو انسانانو ته د هغوی هر ډول حقوق ټاكل كيږي.

يو سـيكولر وطن دی چې حدود او كرښـې يي انګريزانو ټاكلي او بين الملل په رسـميت منلي ،يو اسـلامي وطن دی چې يو وخت يي يو ديوال له اندلسـه يا جنوبي فرانسـه تيريده تر جنوبي افريقا پورې

غځیدلی و بل دیوال یي بیا د جنوبي افریقا له تبجنو دښـــتو د اندونیزیا تر سرسـبزه سـواحلو خپور و همدا راز یي بل دیوال په شرقي ترکستان راتیر شوی و چې په ځان کې د چیچین او داغستان په شـمول د جماهیر شـوروي په نوم یرغمل شـوې خاوره رانغاړله ....دا پراخه اسلامي خاوره زموږ وطن دی ، د مسـلمان وطن اوس هم اشغال دی.

دا خاوره اوس ټوله اشـغال ده ، ددې زمکې د مالکیت دعوه اوس بین الملل کوي ځکه همدې کفارو ویشـلې او دا کرښــې اوس هم دوی پالي او ساتي.

نو لنډه دا چې د مســلمانانوهیواد او وطن یوازې د افغانســتان یا پاکستان یا سعودي او نورو په کرښو کې رامحدوده خاوره نه ده، بلکې د ټولو مسلمانانو هیواد ټوله اشغال شوې اسلامي خاوره ده ، د ټولې اسـلامي خاورې ټولو اوسـیدونکو لپاره یو ډؤل حقوق دي چې د اسـلام په اصـولو ورکول شـوي ، نه دا چې که د افغانسـتان کافر و هغه به د وطن د شراکت له امله سـتا ورور وي او که د پاکسـتان یا بل هیواد مسـلمان و هغه بهپه دې خاطر ستا دښـمن وي چې ستا د وطن نه دی ، که د نړۍ په هره برخه کې په مسـلمانانو د کفارو له لورې هر وحشـتونه کیږي تا پورې اړه نه لري ځکه ستا

له ملکه بهر دي.

نو د همدغه وطنیت او قومیت د نارو د ژوندي ساتلو لپاره او د اسلامي امت تر منځ د نفرت خپرولو او ویشلو لپاره کرکټ ډیره موثره وسیله ده ، تاسې ګورئ کله چې د دوه تش په نوم اسلامي هیوادونو لوبه شي ( تش په نوم اسلامي هیوادونه ورته ځکه وایو چې که عوام یې مسلمانان دي خو حاکم نظامونه پرې اسلامي نه دي ) نو ددې دواړو هیوادونو مسلمانان د خپل وطن په نوم ځان وژني هغه وطن چې پولې یې ورته انګریزانو تعین کړي ددې ټولې خاورې مالک الله دی که بین الملل دی ؟

چې اوس به بین الملل موږ ته د وطنونو پولې تعینوي یانې د خاورې مالک له الله پرته بل څوک ګڼل هم شرک دی چې دا بیا یو بیل بحث دی چې موږ پرې په خپلو رسالو کې بحثونه کړي .

په هر صورت دغه وخت چې کله د کرکټ لوبه وي ، ځوانان یې د ګټې او بایلات په شیبو کې کوم انحرافات دي چې نه یې ترسره کوي ؟

د وطنیت او قومیت مینه یې لا رګونو او زړونو کې په چپو شي ، دوی فکر کوي دا هر څه تصادفي دي ، داسې نه ده بلکې دا یوه طرحه شوې دسیسه ده چې د اسلامي امت ځوانان دا ځان سره

تسلیم کړي چې موږ ټول اسلامي امت یو موټی او یو ملت نه یو بلکې په افغاني ، پاکستاني ، ازبکستاني ، تاجکستاني نورو او نورو ویشل شوې یو.

هو!

همدا د یووالي تصور ، ددغه وطن په نامه د وطنیت اعتقادي پولو د نړولو تصور د لومړۍ قبلې اقصی د ازادۍ په شمول د ټولې اسلامي خاورې د ازادۍ تصور دا ټول فکر او احساس د اسلامي امت په ځوانانو کې همدې کرکټ ورووژه.

اوس نو پاکستانی مسلمان د افغاني مسلمان دښمن دی او افغانی د پاکستاني مسلمان دښمن دی اوس نو په دوی د حاکمو ډیموکراتیکونظامونو او د دوی د مفسدو قایدینو د کفري سیاستونو په پایله کې د یو هیواد مسلمانان د بل هیواد دښمنان دي او په دې دښمنۍ کې دومره افراط کوي چې افغانی ځوان یي د پاکستاني له ضده مشرک هندو په غیږ کې نیسي په مخ یي ښکلوي او پاکستانی ځوان یي بیا د افغاني له ضده نورې داسې کفري کړنې کوي چې په هیڅ ډۈل د توجیه وړ نه دي.

د قومیت د بویناکو نارو یو شور او غلبله جوړه وي ، ته به داسې فکر کوې چې د اسلامي امت ټول ځوانانو ټول کفري ملت ته ماتې ورکړه او په ټوله نړۍ د اسلام د حاکمیت راج شو.

## د قومیت او وطنیت په رد کې قراني او نبوي ارشادات :

الله عز وجل فرمایي:

يَآ أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَٰكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَىٰ وَجَعَلْنَٰكُمْ شُعُوبًا وَقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوٓا ۚ إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَىٰكُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ [سُورَةُ الحُجرَات : 13]

ژباړه:اې خلکو! موږ تاسي له یوه نارینه او یوې ښځي څخه پیدا کړئ او بیا مو تاسي قومونه او قبیلې وګرځولئ، تر څو چې تاسي یو او بل سره وپیژنئ. په حقیقت کښې د الله په وړاندي ستاسي څخه تر ټولو زیات عزتمند هغه څوک دی چې په تاسي کښې تر ټولو زیات پرهیزګار وي. په باوري ډول الله په هر څه پوهېدونکی او باخبره دی.

نو د انسانانو ویش په قبیلو یواځې د تعارف له امله دی، نه په دین کې د دوستۍ، دوښمنۍ له امله، نو له دې وجې خو نبي علیه السلام هغه دوه کسانو ته ډیر سخت غصه شوی و، چې غوښتل یې د

قوميت جاهلي اواز په خلكو كې پورته كړي ورته فرمايلي وو (دَعُوها فإنَّها مُنتنةٌ) [أخرجه مسلم 2584]،

ژباړه: دا بدبويه د جاهليت چغې پريږدئ. نو له دې حديث نه دا خبره ثابته شوله چې د دوستۍ، دوښمنۍ معيار قوم يا وطن نه دى بلكې دين دى چې له امله يې د كافر سره دوښمني پكار ده او د مومن سره دوستي پكار ده كه د هرې قبيلې او وطن سره تړاو لري.

او په بل حديث كې راځي:

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : " لَيَنْتَهِيَنَّ أَقْوَامٌ يَفْتَخِرُونَ بِآبَائِهِمُ الَّذِينَ مَاتُوا ، إِنَّمَا هُمْ فَحْمُ جَهَنَّمَ ، أَوْ لَيَكُونُنَّ أَهْوَنَ عَلَى اللَّهِ مِنَ الْجُعَلِ الَّذِي يُدَهْدِهُ الْخِرَاءَ بِأَنْفِهِ ، إِنَّ اللَّهَ قَدْ أَذْهَبَ عَنْكُمْ عُبِّيَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ وَفَخْرَهَا بِالْآبَاءِ ، إِنَّمَا هُوَ مُؤْمِنٌ تَقِيٌّ ، وَفَاجِرٌ شَقِيٌّ ، النَّاسُ كُلُّهُمْ بَنُو آدَمَ , وَآدَمُ خُلِقَ مِنْ تُرَابٍ ".

[أخرجه الترمذي 3920وسنده حسن]

ژباړه: له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت نقل دى چې هغه يې د نبي صلى الله عليه وسلم نه نقل كوي چې هغه فرمايي: خامخا به خلک په خپلو مړه شوو هغو مشرانو باندې له فخر يا تكبر څخه منع كيږي چې د جهنم خشاک ګرځيدلي(يعني د كفر په حالت كې مړه دي) كنه د الله په نزد به له هغه ګونګټ نه هم ډير سپک شي

چې په خپلې پوزې سره ګندګي رغړوي، الله تعالی له تاســو څخه د جاهلیت زمانې تکبر او په خپلو مشرــانو فخرکول ختم کړی دی یا به پرهیزګار مومن وي او یا به بدکاره، بدبخته انســـان وي، ټول انســـانان د ادم علیه السـلام اولاد دی او ادم علیه السـلام له خاورې څخه پیدا دی. نو دا د هغه قومپالنې او وطن پالنې حال شـــو چې کفار ورته له مختلفو لارو خلک رابلي چې یوه لار یې هم د کرکټ لوبه ده.

افسوس!

موږ چرته وو او چرته راورسیدو ؟

د کرکټ د زیانونو په بیلګو او مثالونو که نورې خبرې کوو نو دا لنډه رساله به په یو پنډ کتاب واوړي ، نو دا مشت د خروار د نمونې په توګه ومنئ همدومره به کافي وي.

اوس راځو دې ته چې ولې به کرکټ دومره رشـد او پرمختګ نه کوي ، ولې به یي ورځ تربلې مینه وال نه زیاتیږي چې علماء سره د اوږدو ږیرو او غټو پټکیو د رسول الله صل الله علیه وسلم په ممبر ناست دي ،په ځاې ددې چې ددې حربې په سیاسي او یرغلیز اړخ خبرې وکړي حقایق خلکو ته واضـح کړي ، دوی لګیا دي دخپل

سکولر وطن د کرکټ د ګټلو لپاره په ډله آیز شکل دعاګانې کوي ، ځوانان خو لا پرېږده چې د وطنیت د ګمراه عقیدې په بنیاد په داسې موقعه په خپلو خریلو مخونو د سکولر وطنونو بیرغونه جوړوي بلکې ملایان یې د کرکټ د سیالیو په وختونو کې د وطنیت د فکر د خه ژوندي ساتلو لپاره سره له اوږدو ږیرو او غټو پګړیو دا شرمونکې کړنې ترسره کوي.





[redacted]
1h ·



ځکه به نو ځوانان بیا په داسې موقعه له خولې داسې کفري الفاظ وباسي چې سړې په یو دوه کې حیران کړي.

ملایان ، ملکان ، ځوانان ټول په دوکانونو حجرو او کورونو کې سره راټول او یو ځای د کرکټ په ننداره بوخت وي.

او دوی به ولې نه تشویقیږي چې د امریکا له لورې پرې د شریعت په نامه د حاکمې طالبي دیموکراسۍ مشـــــران یې د کرکټ د ودې او

پرمختګ لپاره په ملي او بین المللي کچه د کفارو له لوري ورکول شوي پلانونه تطبیقوي .



عجیبه ده!

اشـــغال ختم نـه دی بلـکې اشـــغال خپلـه بڼـه بـدلـه کړې . هو ! اوبښ بدل شـوی نه دی بلکې ډېره یې بدله کړه ، مخکې د اشـغال ټوپک د جمهوریت د عســکر په اوږه ایخې و اوس نو د اشــغال ټوپک د طالب په اوږه ایخی دی ، مخکې د دیموکراتیکو ارزښتونو او سـیکولر اسـاسـاتو د تطبیق او پـالنې مـاموریت د جمهوریـت چـارواکـو مخ تـه وړ اوس یـې طالب چارواکي مخ ته وړي.



Khalid Zadran @khalidzadran01 · 1d

د کرکټ په ډاګر د افغانستان اتلان نن سهار همداشیبه هېواد ته راورسیدل! ددوی ورستی، لاسته روړنې د افغانانو د خوښی سبب شوې.

مور په خپلو اتلانو ویاړو❤️




21.7K views

128 192 2,255

د فکري جګړې د وســیلې او وســلې په حیث د کرکټ څخه چې کفارو کومه ګټه واخسـته هغه یې د فکري جګړې په لړ کې له بلې یوې وسـیلې څخه هم نه ده اخیسـتې ، دلته نو ووړ او زوړ ټول لګیا دي په شعوري او غیر شعوري توګه د غرب ګټې پالي او اهدافو ته یې تحقق ورکوي ، که هغه چارواکي دي که د مذهبي ګوندونو په نامه د دیموکراســۍ د ترویج او تطبیق د ګنده پروژې نور غړي او منســوبین دي ،که ملایان دي او که نوري بلاګاني دي ، ټول په یوه خوله د اســلامي امت د تباهۍ لپاره ناري وهي.


Siraj ul Haq
1 h
شاباش نسیم شاہ
قوم کے دل جیت لیے، ہمیشہ
ایسے شاندار کارکردگی سے
دیر کے لیے فخر بنو، پاکستان
کے لیے فخر بنو
پاکستان کرکٹ ٹیم کے لی...
See more
See translation
Altaf Khan and 16k others
1.4k comments
Like
Comment
Share

د قومیت او وطنیت دا ناري او بغاري که ډیرې خلک غیر شــعوري وهي خو ډیرو خلکو ته بیا په شـعوري توګه دا ماموریت سـپارل شـوی او ددې مزدورۍ په بدل کې ورته د ډالرو کڅوړې راروانې دي.





د غرب د فکري یرغل تبر ته همدې احمقانو لاستي وراچولي.

دا چې په دې برخه کې د اسلامي امت د ځوانانو مسوليتونه څه دي ؟
ددغه فکري يرغل مقابله په څه ډول شوني ده ؟
دکفارو له لورې به ددې پيل شوې فکرې جګړې دا وسيلې او
اسلحې څنګه بيکاره کوو؟
دا يو پراخه بحث دی

## د اسلامي امت د ځوانانو مسوليتونه:

دا چې اسلامي امت د کفارو له لورې د ذهن او عقيدې په لحاظ سره اشغال شوی دی نو د دغه اشغال په وړاندې د اسلامي امت د ځوانانو مسوليتونه خورا درانده دي ، چې د ځينو يادونه يې دلته اړينه ګڼو:

لمړی مسوليت: ځوانانو او خپل راتلونکي نسل ته د قوميت او وطنيت د ګمراه عقيدې په ځاې د يو اسلامي امت د جوړيدو او د پراخه اشغال شوې اسلامي خاورې د اذادۍ تصور او فکر ورکول لازمي دي ، دوی بايد خپل وطنونه د بين الملل د کرښو په بنياد ويشل شوې منطقې ونه ګڼي، بلکې ټوله اسلامي خاوره خپل وطن او ټول اسلامي امت خپل قوم او تن وګڼي .

دویم مســـولیت: د شرعي لوبو له لارې مســـلمانان د کفارو مقابلې ته هڅول:

ټولې هغه لوبې چې په جهاد کې مرســـته کوي او د مجاهدینو بدن ته ګټورې وي؛ اسـلام ورته مونږ هڅولي یو لکه د غشـو ویشـتل، لامبو وهل او اســـونه زغلول او یا نورې هغه لوبې چې د بدن تقویې لپاره ګټورې دي لکه پهلواني، بکســـنګ، عام ورزش او داســـې نور.. نو داسـې لوبې چې د جهاد لپاره اعداد(تیارې، تربیت) ګڼل کیږي؛ په اړه یې الله عز وجل مونږ تـه امر کړی دی چې دلایـل یې مخکې ذکر شـوي دي. نو د دې امت ځوانانو ته پکار دي چې دغه شرعي لوبو ته مخه کړي او نور خلک ورته هم د جهاد د اعداد په نوم وهڅوي، دې لپاره چې څوک یې زده کوي، له پیل څخه په کې ښـــه نیت وکړي او همدا بیا جهاد طرفته هڅونه بلل کیږي چې الله عزوجل یې خپل پیغمبر ته امر کړی دی فرمایلي دي:

يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ[سورة الانفال: 65]

ژباړه: ای پیغمبره صلی الله علیه وسلم مومنان جهاد ته وهـــڅوه. نو د دغه لوبو له لارې مسلمانان د کفارو مقابلې ته هڅول.

دریم مسولیت: د کفارو له خوا رواج شویو حرامو لوبو زیانونه امت ته واضـــح کول: چې په دې اړه د کرکټ زیانونه مخکې ذکر شـــول،

داســـې د هرې حرامې لوبې زیانونه امت ته واضـــح کول او د هغې ترشاه د کفارو پټ دسایس راښکاره کول او امت ترې خبرول لکه په مومنانو کې همجنســبازي خپرونه د دې لوبو یو هدف دی، همداســې بـد نظري، بې حیـایي، د هلکـانو او جینکو تر منځ نـاروا اړیکي، د شرابو، جوارۍ او سندرو ازادي، د کفارو سره اړیکي عادي کول او د دوســـت په نظر ورته کتل او د جهاد، ولاء، براء نظریه د ذهن څخه ویســـتل، چې د دې لوبو مهم اهداف دي؛ امت ته یې روښـــانه کول. اوهمداسې د امت په ځوانانو ددې لوبو نورې منفي اغیزې هم روښانه کول.

خلورم مسولیت: د کفارو له رواجونو او عادتونو څخه خلک متنفره کول:

دا لوبې چې د کفارو د ځانګړي شعار په توګه رواج شوي دي، د امت ځـوانـانو تـه پکـار دي چې مســـلمـانـان ترې متنفره کړي ځکـه چې د کفارو له ځانګړو عادتونو او رواجوانه څخه مونږ منع شـوي یو نبي علیه السلام فرمایي

خَالِفُوا الْمُشْرِكِينَ، [رواه مسلم برقم:259]

ژباړه: د مشــــــرکینو خلاف وکړئ. او بل حدیث کې راځي نبي علیه السـلام فرمایي:مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ [رواه أبو داود:4031، وسـنده

صــحیح] ژباړه: چا چې د یو قوم سره مشـــابهت وکړو نو له هغوی څخه به وي. نو دا لوبې چې د کفارو د ځانګړې عادتونو او رواجونو د محبت لامل دي، خلک ترې متنفره کول او خلکو تـه د کفارو د مشـــابهت زیانونه بیانول چې ترټولو لوی زیـان یې د ایمان څخه محرومیدل دي او د قیامت په ورځ د کفارو په صـــف کې راپاڅیدل دي. کـه د اســـلامي امـت یو ځوان دې تـه فکر وکړي چې دا کوم لوبغاړی چې دا ورسره محبت لري او د هغه نه متاثره دی؛ په عادتونو کې ورسره د ورته والي کوښـــښ کوي او بیا د نبي علیه الســـلام په دې حدیث کې فکر وکړي چې فرمایي: أَنْتَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ، متفق علیه.
ژباړه:  ته به له هغه چا سره یې چې مینه دې ورسره وي. نو د دغه مینې په زیان به پوهه شي. او په دې طریقه هم له دې لوبغاړو سره د مسلمانانو نفرت پیدا کیدلی شي چې ددې لوبغاړو په عقیده بحث وشي او مســلمانانو ته یې عقاید روښـانه شي. لکه هغه ځوانان چې د هندي کرکټیانو سره مینه لري د هغوی ګنده عقاید ورته واضح شي چې دوی د لوی الله په ځای د غوا عبادت کوي نو څنګه د داســـې کس سره ته مینه کوی یا یې عادتونه خپلوی چې د غوا تعظیم کوي، خوشـــیان یې ځان پورې منســـي او متیازې یې ســـکي. همداســـې د دغه صـــلیبي کرکټیانو عقـایدو تـه کـه کتنـه وشي نو هم د نفرت لامل ګرځي لکه

دوی د الله په اړه د تثلیث عقیده لري الله عزوجل یې په اړه فرمایې
:لَّقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ ثَالِثُ ثَلَاثَةٍ [سُورَةُ المَائدة [73]
ژباړه:هغه خلک په یقیني توګه کافران شــول، چي ویې وېل: الله په دریو کښي یو دی.
او همداسې د دغه نورو کمونستانو په ګنده عقایدو کې که فکر وشي چې د الله نه انکار، د دین نه انکار او یا د بتانو تعظیم او داســې نور... عقاید لري، او همداســې دغه اسلام ته منسوبو مرتدو لوبغاړو په اسلام ماتوونکو کارونو کې که فکر وشي لکه د قومیت او وطنیت عقیده چې دوی خپله کړې، د کفارو سره د دوی له زړه نه مینه کول، او د الله له دین نه په پوره توګه اعراض یا مخ اړول، او د کفارو د قانون احترام کول، او د ســیکولر په عقیده باور لرل او داســې نور... نواقضــو ته که د دوی فکر وشي نو دا هم د دوی سره د بغض او نفرت یو لامل ګرځي. نو داسې عقاید چې څوک لري هغوی د محبت وړ نه دي بلکې د نفرت او دوښمنۍ وړ دي.
نو کله چې د دوی اصـــل او بنیاد خلکو ته راښــکاره شي بیا به ترې نفرت وکړي.
پنځم مسولیت: د کفارو او د هغوی د رواجونو سره د کرکې او نفرت ګټې خلکو ته واضــح کول: زمونږ په دین کې د کفارو او د هغوی د

عادتونو سره د دښمنۍ، نفرت اوکرکې په ګټو کې ډېر نصوص راغلي دي چې ځینې له هغو څخه دا دي:

په دې سره د ابراهیم علیه السلام او د ټولو پیغمبرانو اقتداء کیږي لکه الله عز وجل فرمایي: قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِىٓ إِبْرَٰهِيمَ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ إِذْ قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُا مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدَٰوَةُ وَالْبَغْضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَحْدَهُۥٓ[سُورَةُ المُمتَحنَة 4 ]

ژباړه : ستاسي لپاره د ابراهیم علیه السلام او د هغه د ملګرو (په کیسه) کښې یوه غوره نمونه ده، چې هغوی خپل قوم ته په ډاګه وویل: "موږ له تاسي او ستاسي له دغو معبودانو څخه چې د الله پر ځای یې بندګي کوئ، په ټینګه بېزار یوو. موږ ستاسي څخه منکر شوي یوو او زموږ او ستاسي تر منځ د تل لپاره دښمني او کینه ولویدله، تر څو پورې چې پر یوه الله ایمان رانه وړئ.

او همدا ملت ابراهیمي دی چې مخ اړونکی یې لوی کم عقل دی لکه الله عزوجل فرمایي:

وَمَن يَرْغَبُ عَن مِّلَّةِ إِبْرَٰهِمَ إِلَّا مَن سَفِهَ نَفْسَهُۥ[سُورَةُ البَقَرَة [130]

ژباړه: اوس څوک، د ابراهیم علیه السلام له دین څخه مخ اړوي؟ له هغه چا پرته چې په خپله یې خپل ځان په حماقت او جهالت کښې

اخته کړی وي، (بل څوک دا حرکت کولای شي؟).

په دې سره د سـړي ایمان پوره کیږي لکه په حدیث کې راځي:مَن أحبَّ للَّهِ وأبغضَ للَّهِ ، وأعطى للَّهِ ومنعَ للَّهِ فقدِ استَكْملَ الإيمانَ أخرجه أبو داود: 4681، وسنده حسن]

ژباړه: چا چې د الله لپاره مینه وکړه او د الله لپاره یې کینه وکړه او د الله لپاره یې یو شی ورکړو او د الله لپاره یې یو شی منع کړو، نو ده خپل ایمان پوره کړو.

په دې سره د کلمې مهم شرط چې په طاغوت کفر کول دي عملي کیږي ځکه چې الله عز وجل فرمایي

: فَمَن يَكْـفُرْ بِالطَّٰغُوتِ وَيُؤْمِنۢ بِاللَّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ لَا انفِصَامَ لَهَا[سُورَةُ البَقَرَة : 256]

ژباړه: څوک چې له طاغوت څخه منکر شي او پر الله ایمان راوړي، هغه یوه داسې کلکه اسره ونیوله، چې هېڅکله ماتېدونکې نه ده.

نو د کفارو او د هغوی له عادتونو سره دوښمني په طاغوت باندې د کفر کولو په صورتونو کې داخل دی.

په دې سره د ایمان خوند او مزه انسان ته حاصلیږي لکه په حدیث کې راځي: ثلاثٌ مَنْ كُنَّ فيه وجدَ حلاوَةَ الإيمـان : أنْ يكونَ اللهُ و رسولُهُ أحبُّ إليه مِمَّا سِواهُما ، و أنْ يُحِبَّ المرْءَ لا يُحبُّهُ إلَّا للهِ ، و أنْ

يَكْرَهَ أنْ يَعودَ في الكُفرِ بعدَ إذْ أنقذَهُ اللهُ مِنْهُ ؛ كَما يَكرَهُ أنْ يُلْقـــى في النارِ [اخرجه البخاري 16ومسلم:43]

ژباړه: درې خويونه دي په چا کې چې موجود شي نو د ايمان خوند، مزه به ورته حاصله شي: الله او رسول صلى الله عليه وسلم ورته له نور هر چا څخه زيات محبوب شي، د يو سړي سره يواځې د الله لپاره مينه وکړي، او کفر ته ورګرځيدل روســته له دې چې الله ترې راخلاص کړی وي داسې بده ګڼي لکه اور ته غورځيدل چې بد ګڼي.

نو کله چې ددغه کافرو لوبغاړو د نفرت او دښمنۍ په اړه يو مسلمان د ذکر شوو ګټو نه خبر شي نو بيا به هيڅکله له دوی سره او نه هم له نورو کافرانو سره مينه وکړي او نه به د دوی دغه په کفري دســيســو مشـــتمله لوبه او يا نورو عادتونو سره مينه وکړي بلکې د الله لپاره به يې د عادتونو سره دوښمني ولري.

پنځم مســوليت: د کافرانو په اړه د نبي عليه الســلام او د صــحابه و کردار خلکو ته يادول او د هغوی د مخالفت بيلګې ذکر کول.

شــپږم مســوليت : د وخت قدر او اهميت ذکر کول او د دې لوبو په وخت منفي اغيزه ذکر کول دوی د امت په دردېدلي حالاتو خبرول او د ټول اسلامي امت له داسې حالاتو څخه د ويستلو لپاره د ځوانانو د ســالمي روزنې په پار ددوی د وختونو د ضــايع کيدو مخنوي کول او

ددوی د مختلفو استعدادونو د غوړیدو او د دوی د هر اړخیزې روزنې په هدف د دوی وختونه ډکول او قیمتي کول د ځوانانو په مسولیتونو کــې راځــي .

اوم مسولیت: د ځوانانو دادی چې د اسلام رښتیني بچي وپیژني او د اســلامي امت په درد دردمند مؤحد مجاهدین خپل ورونه وګڼې ورسره هر اړخیزې مرستې او همکارۍ جاري وساتي او د اسلام په نامه د اسلام بدنامونکو ( طالب ملېشـو ) له حقیقت او اصلیت څخه ځانونه خبر کړي ، د طالب ملېشــو او د دوی د کافرو بادارانو د پلانونو او دسایسو څخه د لا زیاتو مالوماتو ترلاسه کولو لپاره باید د اســلامي دولت اعلام تعقیب کړي د العزائم خپرندویه اداري کتبي ، ویډیوي ، غږیز او نور هر اړخیز نشرــات وڅاري او تر نورو یي ورســـوي .

وصلی الله علی نبینا محمد واله وصحبه اجمعین.